# د اشرف خان هجري د قېدو بند مهمه وجه

نورالبصرامن*

**ABSTRACT:**

Among the so called "Prison poets" of Pashto literature, after Kushhal Khan Khattak, his elder son, Ashraf khan Hijri is the poet who because of fourteen years of incessant prison and death meanwhile, has the renown as " the poet of chains". Ashraf khan Hijri, like his father, has been the victim of Mughal political and bureaucratic outrage and was victimized so that not only he spent fourteen precious years of his life in the Mughal prison but also succumbed to death there which is an unforgettable tragedy of Ashraf khan Hijri's life. In this thesis, the root cause of Ashraf Khan Hijri imprisonment has been pinpointed in the backdrop of historical event of the time and in the light of research, on account of which he was sent behind the "black bars" of prison.

هسې خو د خوشحال بابا مشر زوے اکبر خان ؤ[1] چې په وړوکوالي کښې وفات شو په دې وجه د خوشحال خان په زامنو کښې اشرف خان هجري مشر یا دېږي۔

اشرف خان هجري (۱۰۴۴هـ ــــــ ۱۱۰۲هـ ش) د خوشحال خان ختک مشرزوے اؤ ولي عهدؤ۔ د خپل پلار په څېرئې په شعر و ادب کښې نوم پېدا کړے ؤ۔ او هم ئې د تورې شرنګ په خپل دور خور ؤ۔ هم ئې د مغلو لۀ پلۀ جنګو نه کړي دي او هم د هغوي خلاف جنګېدلے دے ۔ پلار او زوے دواړو د ازادۍ او خپلواکۍ هڅې کړي دي ۔ دواړه د مغلو قېديان تېرشوي دي ۔ د اشرف خان هجري د ژوند اخرنۍ برخه د پلار په څېر بې یاره بې وطنه اوله درده ډکه وه ۔[2]،،

د تاريخ مرصع مؤلف افضل خان ختک چې د اشرف خان هجري زوے دے د خپل پلار د زېږون د نېټې په حقله ليکي چې :

---

*پي ايچ ډي ريسرچ سکالر پښتو څانګه پېښور پوهنتون

واضح دي شي خان علين مكان ته حق تعالى
شپږپنځوس نارينه كرامت كړۀ . په داواړو كښې
خان جنت مكان والانبان چې والد د مؤلف دے
ارشد او ولي عهد ؤ . تاريخ د تولدئې دا دے .

بــه زاويـــائے مـــه روزه پـــاس اول شـــب
نهـــرا د اشـــرف او نـــدر كنـــار دا يـــه بخفـــت
چـــو بـــود وقـــت بهـــار وشـــگفتين گـــل هـــا
حســـاب ســـال وے آمـــد بهـــار ايـــل شـــگفت[3] ،،

د خوشحال بابا په دې قطعه كښې د ,,بهار ايل
شگفت،، د مادې له رويه په ابجدي حساب رمضان
۱۰۴۴ هجري په مطابق مارچ ۱۲۳۵ء د اشرف خان
هجري د زېږېدو نېټه جوړيږي .[4] ،،

,,د اشرف خان هجري د زوكړې او ژوند د وخت د حالاتو په مقدماتي جاج كښې څرګندېږي چې دا د تاريخ يو ډېر د خېرانتياوړ ځپركے اوباب دے . د هغۀ زېږېدل په داسې وخت كښې دي چې د دربار ظلم، تيرې او فسادله يوې خوا په زور كښې دي . په خلقو او اولس باندې د هغوي تيرې او د جاګير او ماليې بوجونه له بلې خوا او خپله د پښتنو ترمېنځ بې اتفاقي او قبيلوي شخړې له دريمې خوا ، هجري په همدغسې يوله حواد ثو ډكه مهال او چاپېريال كښې ستركې غړوي او بيا نو خپله د همدغوهوادثو يوه عمده برخه ګرځي .[5] ،،

د اشرف خان هجري اولنۍ ګرفتاري هغه وخت اوشوه كله چې خوشحال بابا مغلو ګرفتار كړو اوهندوستان ته ئې بوتلو . نو اشرف خان هجري د خوشحال خان د صلاح نه بغېر د خدايار خليل او جګرام هندو په لمسه كابل ته لاړو چې هلته سيد اميرخان خوافي ګرفتار كړو .

,,دلېه همت چې د بهادر خان ځوے ؤ ضامن شۀ خان جنت نښـان ئې لـه قېده خلاص کړو ـ بيا پـه سرائے راغـے کيناست ـ اولس اباد شۀ ـ زا هوزاد ئې پـه ځائے شۀ،، [6]

د اشرف خان هجري دوئم ځل ګرفتاري هم په سياسي بنيادونوشوې وه او هغه داسې چې د خوشحال خان خټک د آزادولـو ټول کوششـونه ناکـام شول او د هغـۀ بـال بـچ ,,سيکري،، کښـې پنـاه واخسـته دغـه وخت اميرخـان خوافي اشرف خان هجري دوباره ګرفتار کړو ـ د هجري ضامن د لېرهمت د سيد اميرخان خـوافي پـه دغـه حرکت ډېر زړۀ بـدے شـو ـ د تـاريخ مرصـع د مؤلف افصل خان خټک د بيـان مطابق د هجـري پـه دغـه دوبـاره ګرفتـارئ د دلېر همت او د کابـل د صـوبېدار سـيد اميـر خـان خـوافي ترمينځـه نوبت تـر جنګه رسېدلے ؤ ـ ولې خبرشو ـ نتيجه دا شوه چې اشـرف خـان يوځـل بيـا لـه قېده آزاد شو،، [7]

ددې دوه ځله ګرفتـارئ پـه بـاره کښـې پـه تـاريخي او ادبـي کتـابونو کښـې څـۀ خـاص تفصـيل نشـته خـو د سـياق و سـباق نـه دا ښـکاره ده چـې د اشـرف هجـري دغـه ګرفتـاري لـږه مـوده بلکې پـه شـمار يـو څـو ورځـې وه ـ د اشرف خان هجري دريمه ګرفتاري هغـه وه چـې د دۀ د ژونـد يـو داسـې حادثـه وه چـې خاتمـه ئـې پـه مـرګ اوشـوه ـ د اشـرف هجـري د دې ګرفتـارئ پـه بـاره کښـې د هغـۀ زوے افضل خان خټک داتفصيل وړاندې کوي ـ

,, بهرام نخوست انجام په هغه اوان چې لوئے خان په يوسفري کښـې ؤ دے د کوکامو سره په جلبئ کښې ؤ ـ د سرائې تاخت پرې وشۀ ـ کوړمې هر څۀ سره راغـے دے وتښ يوسـفزوته لاړ، يوسـفزيو د خـان علـين مکـان تـر پښـو واچۀ چې خـان علـين مکـان د يوسفزيونه خپـل ملـک تـه راتـۀ دے ئې هـم ورسـره راوسـت بيـائې راسـتو د خـان جنت نښـان تـه پښـوئې پربوسـت د خـان جنت نښان هم چې زړۀ صاف ؤ د دۀ ګناه ئې معاف کړ ـ امير خـان تـه ئې ودراؤ دوه صـدو پنجـاهي منصـب ئـې ودۀ ورکړ ـ د غــالي ډهبـر تانـه داري ئـې ورتـه

واخسته ـ دے منافق ؤ پټ د اميرخان سره د خټک د ملک کارسازي او د خان جنت مکان د قېد خبرې ئې واخست اميرخان هم ډېر شوم طمع لالچي ؤ ـ ورته ئې اشارت وکړ چې په پښاور مۀ ځه ـ بېرون درومه اخرد ے ـ از راه دولت خواهي ورغے دسبد پهولا کره پخپله ورغے چې اشنا دے دې وګورم نور لاړشم ـ هغۀ له خدائې تعالی هم دا غوښتل ورته ئې ووئيل چې تۀ کښېنه زۀ کورته لاړشم چې څۀ طعام واستوم ـ طعام وخوره هالۀ دورمه دې ئې کښېنا ؤ نورئي خلق ترې چاپېر کړل ـ پروانه ئې د اميرخان ورښکاره کړه قېدئې کړ،، [8]

په دې اقتباس کښې هغه ټولې وجې ذکر شوي دي ـ چې په کومو اشرف خان هجري زنداني کړے شوے وو ـ زما په خيال ددې نه زيات مستند مواد نور نۀ شي کېدے ځکه چې دا د اشرف خان هجري د زوے وېنا ده ـ

په دې اقتباس کښې دا نقطې اهمې دي ـ

1. د اشرف خان هجري په ګرفتارۍ کښې بنيادي کردار د هغۀ ورور بهرام خان د منصب په لالچ کښې ادا کړے دے ـ لکۀ څنګه چې د خوشحال بابا په ګرفتارۍ کښې د هغۀ ترونو ادا کړے وو ـ

اؤ خوشحال بابا هم د اشرف خان هجري په ګرفتارۍ کښې بهرام خان ګرم ګڼي او وائي چې :ـ

مشرورور دې په زندان کړتۀ خاني کړے
دا خاني دې شه په ځان پورې حرامه[9]

,,د اشرف خان هجري د زنداني کېدلو په موضوع کښې بايد د بهرام خان هلې ځلې د يو عمده علت په توګه تر زيات غور لاندې راشي ـ مغلو په وړومبي ځل غوښتل چې له خوشحال نه وروسته هجري د خپل ځان کړي په دې کار کښې تريوه حده کامياب هم شول خو وروسته ئې بهرام دخپلو اهدافو په سرته رسولو او پوره کولو کښې هجري د ځان د پاره وړ وګڼلو،

بهرام هم وغوښل چې ځان ترټولو وړاندې مغلوته نزدې کړي او د اشرف خان هجري په ځائے خپله دے مشر او سردار شي ـ د خپل دغه مرام له پاره ئې له هېڅ ډول هڅو ډډه ونۀ کړه ـ ،،[10]

2. د اشرف خان هجري يو خېښ آزاد ګګيانړي د امير خان نه بغاوت کړے ؤ او اشرف خان هجري د هغۀ بال بچ د ځان سره ساتلي وو اوهغه ئې سوات ته د يوسفزو علاقې ته لېږلې وو ـ چې د هغه ځايه به ئې په مغلو چپاؤنه کول ـ

,,ازاد ګګيانړي د اميرخان سخت مخالف ؤ ـ صوبېدار غوښتل چې ازاد ګګيانړي ته په څۀ ډول سخته سزا ورکړي خو اشرف خان نه غوښته چې ازاد ګګيانړې ګرفتار شي، هغۀ په سوات کښې پناه اخستې وه اوله سواته به ئې په مغلي فوځونو حملې کولي او بال بچ ئې اشرف خان ځان سره محفوظ ساتلې ؤ په دغه وجه هم د صوبه دار او اشرف خان ترمينځه فاصلې زياتې شوې وې،،[11]

3. بله وجه چې د اشرف خان غلطي هم ورته وئيلے شو چې صوبه دار ورته اووئيل چې زما سره کابل ته لاړشه دۀ ورته انکار اوکړو او په خپل ځائے ئې بهرام خان ولېږو چې ددۀ د ګرفتارۍ باعث جوړ شو ـ

,,او بله وجه ئې دا هم وه چې اشرف خان د صوبه دار د خواهش مطابق هغۀ سره کابل ته د تللو ډډه کوله ـ ،،[12]

,, د اشرف خان هجري د ګرفتارۍ په لړکښې يو بله خبره داکيږي چې دا شرف خان هجري او بهرام خان تر مېنځه د اقتدار په جنګ کښې د بهرام خان په طرفدارۍ هجري خپل اوښې شېخ ضياء الدين په خپل کلي اکوړي کښې قېدکړو او بيا هم د قېد په دوران ئې د زهرو په ورکړه شهيد کړو،،[13]

دوست محمد کامل صيب په دې حواله ليکي :

,, د حيات افغاني او تاريخ خورشيد جهان مؤلفينو د اشرف خان د بندي کېدو سبب دا بيان کړے دے ـ چې هغۀ ضياء الدين د شېخ رحمکار زوے

قېد کړے ؤ په دې وجه بادشاه دده ؤ نه خفه شوے ؤ ـ دا خبره صحيح ده چې ضياء الدين د بهرام طرفدار ؤ د حيات افغاني او خورشيد جهان مؤلفينو چې د اشرف خان د گرفتارئ کومه وجه بيان کړې ده ددې په ثبوت کښې هېڅ قسم سند يا دليل نۀ دے پېش کړے،،[14]

په دې کښې هېڅ شک نشته چې د پښتنو اکثرې کورنۍ د اوليائے کرامو او د هغوي د آستانو سره کلکې اړيکې لري ـ او د عقيدت د وجې نه ورسره رشتې او خپلوۍ هم کوي ـ د خوشحال بابا او دهغۀ د کورنۍ آستانه د حضرت کستير گل شېخ رحمکار کاکاصېب آستانه وه او د ډېر عقيدت په وجه ئې ورسره خپلوي کړې وه ـ دوست محمد خان کامل ليکي :

,, چې د تاريخ د مؤلف خاندان د هغۀ د غورنيکۀ شهباز خان راهسې د حضرت شيخ رحمکار ډېر زيات عقيدت مند ؤ ـ او د هغوي فرزند شېخ ضياء الدين صاحب د خوشحال بابا زوم او فقير جميل بېگ صاحب د خوشحال بابا سکه کشر ورور د حضرت شېخ رحمکار له خاصو مريدانو او خلفاؤ څخنې ؤ ـ،،[15]

سېوا د اشرف خان هجري د يو څو شعرونو د قياس نه چې هغۀ پکښې دخپلې داسې گناه ذکر کړے دے چې د هغې په وجه ترې شېخ رحمکار خفه شوے ؤ او بعضې خلق دغه د اشرف خان هجري د بندي کېدو وجه ښايي لکه چې وائي :ـ

زۀ په بند د اورنگ نۀ يم چې به خلاص شم
بندي کړے شېخ رحمکار زيړي کاکا يم[16]

زۀ گنهگار يم زيړ کستيره
د نورو ډېرو ولې ستا په تيره

صـــغير چـــې خطـــا شـــي کبيـــرۀ عفو کـــا
بنـــــده معـــــاف کـــــړو مـــــاه منيـــــره[17]

نـــن پـــه مـــخ د مزکـــې زۀ لـــوے ګنهګـــار يـــم
همېشـــــه لـــــه خپلـــــو بدو شرمســـــاريم[18]

د اشرف خان هجري داسې قسم وېنا اګر چې عقيدت کېدے شي خو په دې وجه د ګرفتار کېدل څۀ توک نۀ جوړېږي ځکه چې شېخ رحمکار په ۱۰۲۳هـ کښې وفات شوے دے ـ[19] او اشرف هجري د شېخ رحمکار د وفات نه ۲۹کاله پس په ۱۰۹۲هـ کښې ګرفتار شوے دے ـ

,,مونږ وينو چې د اشرف خان هجري د زنداني کېدلو په عواملو کښې دغه عمل يعنې اشرف خان هجري ته د شېخ رحمکار زيږي کا کا ښېرا موضوع د زيات تامل وړده ـ هجري د حضرت کاکا صبب له وفاته زيات کلونه وروسته زنداني کيږي او دغه خبره يوازې د روايتونو په بنه د غور وړ ده ـ کۀ فرضاً د هجري په ديوان کښې ددغه ډول خبرو خواته څۀ اشارې هم شته دے نو دهغۀ د اعتقاد لوري ئې مربوطې ګڼلې شو ـ همدارنګا د هجري او مياضياء الدين د اختلاف مسئله کۀ هر څومره جديديت ولري ،نۀ شو کولې چې په بشـپړه توګـه ئـې دهنـد د مغـولي دولـت لـه خـوا د اشـرف خـان د زنـداني کېدلوعمده او سياسي علت وګڼو ـ، ،[20]

لکه څنګه چې د تاريخ مرصع مؤلف د هغه وخت ډېر واقعات نېغ په نېغه ياد خوشحال بابا د بياض په حواله رانقل کړې دي ـ پکار ده چې ددې روايت سپينا وے ئې هم کړے وے ـ د کامل دوست محمد خان په قول د افضل خان خټک په دې خبره خاموشي خبره شک لره بيائي ـ[21] د شک او روايت بنيادونه هېڅکله حقيقت ته نۀ شي رسېدے ـ او د تاريخي واقعاتو نه دا خبره ثابته ده چې دمغلو او د خټکو سياسي او منصبي لاندے باندے کۀ نېغ په نېغه د بادشاه سره نۀ ؤ نو د کابل د صوبه دار او دهغۀ د نائب سره به

ضرور ؤ ـ کۀ مونږ د اشرف خان هجري اولنۍ دوه ځله گرفتارۍ ته ځير شونو هغه هم د خوشحال د گرفتارۍ په ضمن کښې سياسي پېښنه وه ـ

پس د تحقيق په رڼاکښې مونږ په دې نتيجه رسو چې د اشرف خان هجري د زنداني کېدو مهمه وجه د سياسي اړي گړي نه بلـه هېڅ نه شي کېدے او کـۀ چرې مونږ د اشرف خان گرفتاري د خوشحال په گرفتارۍ قياس کړو نو بيا خو پکښې هډو بله خبره نۀ ځائيږي ـ

# حوالې

[1] خټک افضل خان ,,تاریخ مرصع،، مقابله تصحیح او نوټونه دوست محمد خان کامل یونیورسټي بک ایجینسي پېښور، مئ ۲۰۰۴ء مخ ۳۱۲.

[2] شادان، وزیر ,, د اشرف خان هجري د بندي کېدو علتونه،، تکتو پښتو ځانګه بلوچستان یونیورسټي کوټه، جولائي دسمبر ۲۰۱۱ء مخ ۹۰ ـ

[3] خټک خوشحال خان ,,تاریخ مرصع د افضل خان خټک مرتبه دوست محمد خان کامل، یونیورسټي بُک ایجنسي ۲۰۰۴، مخ ۳۱۰.

[4] کامل، دوست محمد خان ,,نوټونه،، په تاریخ مرصع د افضل خان خټک مخ ۱۱۱۵ ـ

[5] انځور، زرین ، د زنځیرونو شاعر اشرف خان هجري ,, د افغانستان د علومو اکاډیمي ۱۳۲۲ هـ ، مخ ۱۱ ـ

[6] خټک افضل خان ,,تاریخ مرصع،، مرتبه دوست محمد خان کامل، یونیورسټي بک ایجنسي پېښور مئ ۲۰۰۲ء مخ ۳۲۷ ـ

[7] همیش خلیل ,,مقدمه،، دیوان اشرف خان هجري ، پښتو اکیډیمي پېښور ۲۰۰۱ء مخ ۸ ـ ۹ ـ

[8] خټک افضل خان تاریخ مرصع مرتبه کامل مومند ، مخونه ۵۲۵، ۵۲۲، ۵۲۷ ـ

[9] خټک، خوشحال خان ,,کلیات خوشحال،، مرتبه دوست محمد خان کامل مومند اداره اشاعت سرحد پېښور، ۱۹۲۲ء دوئم چاپ ، مخ ۱۸۳ ـ

[10] انځور، وزیر,, د زنځیرونو شاعر اشرف خان هجري،، د افغانستان د علومو اکاډیمي ۱۳۲۲هـ ، مخ ۵۳ ـ

[11] شادان وزیر د اشرف خان هجري د بندي کېدوعلتونه مجله تکتو پښتو ځانګه بلوچستان یونیورسټي کوټه، جولائي دسمبر ۲۰۱۱ء مخ ۹۳ ـ

[12] همیش خلیل ,,مقدمه،، دیوان اشرف خان هجري پښتو اکیډیمي پېښور ۲۰۰۱ء مخ **۱۵**

[13] همدغه کتاب مخ **۲۳ .**

[14] مهمند ، کامل دوست محمد خان ,, خوشحال خان ختک سوانح حیات،، شاهین بکس سپوګمئ پلازه، پېښور ۲۰۱۱ء مخ **۲۲۳**

[15] کامل، دوست محمد خان ,,مقدمه،، تاریخ مرصع د افضل خان ختک ، مخ **۳۲.**

[16] هجري اشرف خان ,,دیوان اشرف خان هجري ،، مرتبه همیش خلیل مخ **۱۳۴**

[17] هم دغه کتاب مخ **۳۸۵.**

[18] هم دغه کتاب مخ **۳۸۵.**

[19] زبیر حسرت ډاکټر ,, د خوشحال بابا تاریخ ګوئي،، زربانه پرنټرزمردان مخ **۷۷ .**

[20] انځو زرین دزنځیرونو شاعر اشرف خان هجري، د افغانستان د علومو کاډیمي **۱۳۲۲**هـ مخ **۵۱ـ ۵۲.**

[21] مومند ، کامل دوست محمد خان ,,مقدمه ،، تاریخ مرصع، مخ **۲۷**